# شریعت
ورځپاڼه

د افغانستان اسلامي امارت مرکزي نشراتي ارګان

د تأسیس کال ۱۳۷٤ هـ.ش/ دوهم پړاو / ٦٧٨ ګڼه / یکشنبه ۱۰ شعبان‌المعظم ۱٤٤٦ هـ.ق / د سلواغې ۲۱مه ۱٤۰۳ هـ.ش / ۰۹ فبروري ۲۰۲۵ میلادي


ملي دفاع وزارت:

## ګاونډیو هېوادونو کې افغان چورلکې د افغانستان حق او بېرته دې ورکړل شي

ملي دفـاع وزارت ازبکسـتان هېواد څخه امریـکا ته د افغـان چورلکو د انتقـال پـه اړه اندېښـنه ښـکاره کړې ده.

ملـي دفـاع وزارت په خپـره کړي خبرپاڼـه کې ویلـي، دا چورلکې د افغانسـتان ملکیت دی او باید بېرته



افغـان حکومت ته وسـپارل شـي. پـه خبرپاڼه کې ویل شـوي چې دا چورلکې د تېرې اداري د چارواکو د تېښـتې پر مهال ازبکستان ته لېږدول شـوې وي چې اوس امریکا ته ورل شـوي او یاده کړنه اسلامي امارت ته د منلو وړ نه ده. ۳مخ

## د کابل ـ بیجېنګ پر سوداګریزو او اقتصادي اړیکو بحث وشو



د تولګټـو وزارت سرپرسـت ملا محمدعیسـی ثاني په کابل کې د چین له سفیر ژاو شینګ سره کتلي دي.

یاد وزارت وایـي، په دې کتنه کې دواړو لوریـو په یو شـمېر مهمو موضوعاتو خبرې کړې دي.

د وزارت مسـئولینو ویلي چې په دې غونډه کـې د واخان پر دهلېز او نـورو موضوعاتـو هـم خبرې وشوې.

دغه راز په دې غونډه کې ښـاغلي ثاني د افغـان ټرانس پـروژې په تړاو ویلي، چې اسـلامي امارت د رهبـرۍ پـه کچه له چین سـره مذاکرات شوي او د تولګټو چارو وزارت د یادې پـروژې پیلولو ته بشـپړ چمتووالی لري. ۳مخ

## ۲۱۳جوان در کندز از بخش‌های حرفوی فارغ شدند



وزارت کار و امـور اجتماعـی می‌گویـد، ۲۱۳ جـوان پـس از آموزش‌هـای فنی و حرفـه‌ای در ولایت کندز، اسناد فراغت بدست آوردند.

بـه گفتـه وزارت کار و امـور و اجتماعی، برای جوانان فارغ شـده از بخش‌های فنی و حرفه‌ای جهت فعالیت در بازار کار همراه با اسناد فراغت وسایل و ابزار کار نیز توزیع شده است.

بربنیاد خبرنامه، ۱۸۰ تن از جوانان یادشـده پس از سـپری کردن یک دوره شـش ماهـه از بخش‌هـای ترمیم موبایل، وسایل الکترونیکی خانگی، ترمیم ریکشـا، خیاطی، نلدوانـی و نجاری سـند فراغت بدست آورده‌اند.

در خبرنامه همچنـان آمده که ۳۳ جوان دیگر از بخش... ص۳



## بهـرنیو هېـوادو ته ۱۵۲۰۰ ټنه طـبي تـوکي صـادر شوي



د صنعـت او سـوداګرۍ وزارت مسـئولینو خبر ورکړی چـې په تېر ۲۰۲٤ زېږدیز کال کې له افغانستان څخـه ۱۵زره او ۲۰۰ متریـک ټنه طبي توکي نـورو هیوادونو ته صادر شوي دي.

د دغه وزارت ویاند عبدالسلام جواد ویلي چې، پـه دغو صادراتو کې تر ډېره انجه او شېرین بویه او نور طبي توکي شامل دي.

د جواد پـه وینا، دغـه طبي توکي پاکسـتان، ایران، چین، قرغزستان، هندوسـتان، جاپان، متحده عربي اماراتو، ترکیـې، امریـکا، کاناډا، اوکرایـن، روسـیې او ګڼـو نـورو هیوادونو ته صادر شوي دي.

## آزادی۴۲ شهروند افغان از زندان‌های پاکستان



وزارت امـور مهاجریـن و عودت‌کننـدگان می‌گویـد، در ادامـه آزادی شـهروندان افغان از زندان‌هـای پاکسـتان، ۴۲ تن به تازگی آزاد شدند.

به گفتـه وزارت امور مهاجرین، در میان شهروندان آزادشده افغان زنان و کودکان نیز شامل اند که از طریق تورخم وارد کشور شده‌اند. ص۳

## ساختمان شفاخانه ۱۰۰ بستر ولایتی نیمروز به بهره‌برداری سپرده شد



مولـوی نورجـلال جلالـی، سرپرست وزارت صحت عامه در سـفر به ولایت نیمروز ساختمان شـفاخانه ۱۰۰ بسـتر ولایتی این ولایت را بـه ارزش ۱۵۰ میلیون افغانی افتتاح کرد.

آقای جلالـی در مراسـم افتتاح شـفاخانه ولایتـی ۱۰۰ بسـتر نیمروز گفته کـه بهره‌برداری این شـفاخانه در شـرایط کنونی یک دسـت‌آورد در عرضـه خدمات صحی است.

سرپرسـت وزارت صحـت عامه افـزوده کـه ولایت نیمـروز پنج ولسـوالی دارد و بـه‌زودی کار ساخت یک شفاخانه... ص۳



## سرمقاله

## د نوي کانال د ځمکو وېش!

د خپرونـو په حواله کله ناکله ځینو سـرکاري کړیو کې د بلخ د نوي کانال اړوندو ځمکو د وېـش پر تګلا رو څه بحثونه اورېدل کېږي- ښـکاره ده چـې پر یاده موضوع خبري اترې او مشـورې واقعـاً ډېرې ضروري دي- ځکه یاد کانـال لومړی خو خپلـه د هېواد په اقتصادي ډګـر کې انتهایي زښـت ډېر مهم او ګټور ګام دی، دویم دا چې د هغـه خاص موقعیت، د هېواد پر امنیتي وضعیت یې اغېز، د افغانسـتان د ځمکنۍ بشپړتیا تضمین او د تجزیـې مخنیـوی او نور ډېر هغه عوامل دي چـې باید د یاد کانال د ځمکو په وېش کې کامل دقت وشـي- په دې معنـا چې د یادو ځمکو په وېش کې بایـد د خلکو تر بسـیا کولو ورها خوا د افغانسـتان د ځمکنۍ بشـپړتیا د تضمین لوازم هم په نظر کې ونیول شي، خو دا موخه هغه مهال په ښـه ډول ترلاسه کېدای شـي چې کله یادې ځمکې پر هغو مستحقینو تقسـیم شـي، څوک چې د هېواد په دفاع کې ځوربدلـي او لږ تر لږه تېرو پنځو لسیزو کې یې د شوروي او صلیبي یرغلونو پر وړاندې رښتینې مبارزه کـړې ده- د مثال په ډول موږ کولی شـو له هر چـا مخکې د مجاهدینو د شهیدانو کورنۍ په کې وپالو، بیا د اسیرانو او هغو اشخاصو کورنۍ چې تر کلونو د کمونیستانو، روسـانو، ټامیانو او صلیبیانو په زندانو کې ځوریدلي او کړېدلي دي- دغـه راز بیا هغه مهاجرین چې د یادو یرغلونو له کبله یې کور وکلی وران شـوی او تر ډېرو زمانو یې د پردېسـۍ او محرومیت شپې تېرې کړې دي- همدارنګه د ځینو وچو سـیمو بې وزله هېوادوال هم باید بې برخې پاتې نه شـي ځکه ښکاره ده چې د افغانانو د غوڅ اکثریت وګړو مهم روزګار کرونـده او بزګري ده، نو چېرته چې اوبـه یا زراعتي ځمکې شـتون نه لري، اوسـېدونکي یې خامخا بې وزله او بې روزګاره وي- دغه راز دا هم ډېره مهمه ده چې باید د کانال لپاره یو داسـې نوم وټاکل شـي، کـوم چې کاملاً جامع، شـامل، له خطراتـو پاک، له تأویلاتـو خالي او یوازې کوم مشـخص کلي او قـوم پورې تړلی نه وي- ځکـه دا یو معلوم حقیقت دی چې د سـیمو نومونه د راتلونکي تاریخ په ثبوتونو کې د سـند او شـهادت اعتبار لرلي شي- په هر صورت دغه تاریخي فرصت کې موږ باید وپوهېږو چې که یادې ځمکې واقعاً پر مسـتحقو خلکو ووېشل شي، پر ته له شـکه چې د هېواد ځمکنۍ بشـپړتیا په ټینګښت کې به مو یو مهم ګام اخیسـتي او تاریخي مسئولیت به مو ترسره کړی وي.

## د نفتـو بیې د پـام وړ ټـیټې شـوي



کابـل ښـار کـې راټولې شـوې شمېرې ښیي چې د تېرو اوو ورځو په پرتله د نفتي توکو بیې شـاوخوا لـس سـلنه راکمې شـوې دي.

د راټول شـویو معلوماتو له مخې، یو لېټـر پټرول لـه ٦٥ څخه ٦۱ افغانـۍ، یو لېټر ډیـزل تېلو بیه له ٦٦ څخه ٦۰ او د یو... ۳مخ

## ننګرهار کې ۵۰ کلنه بدي هواره شوه



د سـرحدونو قومونـو او قبایلـو چـارو وزارت وایـي، ننګرهـار کې یـې د خپل ریاسـت په هڅو د یـاد ولایت اچین ولسـوالۍ په پېښـې سـیمه کـې د دوو قومونو ترمنـځ د ځمکې پر سـر راپورته شوې ۵۰ کلنه شـخړه چې اوږده جنجالونـه او بدبینۍ یې پېښـې کړې وې، حل او ښـکېل لوري د سـوله ییز ژوند لـه نعمته برخمن شول.

وزارت وایي، ښـکېلو لوریو چې د بـدۍ اوږدې ریښـې یې سـره پرې کړې اوسـمهال خوښ دي.

دوی د اسـلامي امـارت لـه مسـؤلینو د مننـې ترڅنـګ ژمنه کړې چې له دې وروسـته به یو د بل په وړانـدې خنډونه نه رامنځته کـوي او د ورورګلـوۍ ژونـد به کوي.

یاده دې وي، چې اسلامي امارت هېواد کې د یووالي لا ټینګښت په برخـه کې بې سـارې هڅې کړې او د دربیـو کلونو په اوږدو کې یې سلګونه غټې شـخړې او دښمنۍ په دوستۍ بدلې کړې.

## د میدان وردګو له ښوونځیو سره مرستې وشوې



د میدان وردګو د پوهنې ریاسـت وایي، چې د پوهنـې په برخه کې همکارو مؤسسـو ۳ سوه ۵ زره او ۷٦۰ امریکایي ډالرو په ارزښـت د درسي او د ښـوونځیو د ادارو د اړینو توکو مرسته کړې ده.

د یاد ریاست د خبرپاڼې له مخې، په دې مرسـتو کې ۵۰ زره ٥٦۰ زده‌کوونکو ته د یونیسـف نړیوالې مؤسسې له لوري... ۳مخ

# مصنوعي خو صمیمي رباټونه

عبدالعزیز عزیز

کله چې څوک د مصنوعي ځیرکتیا نوم واخلي، نو زموږ ذهن ته په اتومات ډول بې احساسه او یا هم د انسان په لاس کنټرول شوي روباټان را تداعي کېږي.

تر اوسه پورې چې له مصنوعي ځیرکتیا ډار نشته او لا یې هم انسان د شدید وهم حالت ته نه دي ورې، دلیل یې دا دی چې لا هم روباټانو ته انسانان قومانده ورکوي، ډېټا ورکوي او د انسان په خوښه چلېږي. لا هم روباټان پر انساني تقلید محکوم دي او باید هغه څه وکړي چې انسان یې کوي، خو په دې وروستیو کې د مصنوعي ځیرکتیا په نړۍ کې دا بحثونه عام شوي چې ایا روباټان هم د انسانانو په څېر احساسي او عاطفي ژوند وکړای شي او ایا روباټ هم کولی شي چې د انسان یو عاطفي او رښتینی دوست جوړ شي؟

که انسانان په دې چاره کې بریالي شول، په طبیعي ډول به د روباټ تعریف له سره شي او مصنوعي ځیرکتیا ته به نور تعریفونه راوتراشل شي. تر اوسه پورې مصنوعي ځیرکتیا هغه صنعت بولو چې د انسانانو له خوا ورته پروګرامونه چمتو کېږي، ډېټا ورکول کېږي، د انسانانو پېښې کوي، د انسانانو ورځني ډول فعالیتونه ترسره کوي؛ خو تر اوسه مو دا نه و اورېدلي چې ایا روباټان به هم یوه ورځ وشي کولی چې د انسانانو په څېر انعطاف پذیر واوسي؟ یوه ګیله واوري، د انسان زړه ورسره تسکین شي، د زړه له تله ورسره وغږېږي، خوشالي ورسره شریکه کړي، بریا ورته بیان کړي او له راتلونکو پلانونو یې خبر کړي؟

یو بل توپیر چې باید ورته پام وکړو هغه د مصنوعي ځیرکتیا او روباټونو توپیر دی. باید وویل شي چې مصنوعي ځیرکتیا یوه لویه دنیا لري او حتی هر روباټ د مصنوعي ځیرکتیا زېږنده هم نه دی، ځینې روباټونو ته یوازې د انساني سکلېټ ته ورته میخانیکي اجساد ویلی شو.

په ټکنالوژۍ کې پرمختګ ورځ تر بلې د مصنوعي ځیرکتیا (AI) ورتیاوې زیاتوي. که مصنوعي ځیرکتیا وکولی شي د انساني احساساتو تقلید وکړي، دا به یوازې د معلوماتو سرچینه نه وي، بلکې موږ به بیا له دې وروسته یو احساساتي ملګری، یو عاطفي او د زړه د راز و نیاز ملګری، یو سلاکار او د ژوند یو ډېر صمیمي دوست به مو موندلی وي.

فرض کړئ که په نږدې وختونو کې مصنوعي ځیرکتیا دومره پرمختګ وکړي چې د انسانان د غږ، قد، ټون او څېرې له مخې تفکیک کړي او خپله هم عاطفه او احساسات ولرو؛ نو په مصنوعي نړۍ کې به لوی انقلاب راولي.

له دې وروسته به بیا که یو څوک خپه وي، یا یې زړه سوی ته زړه وي او یا غواړي د یو چا خواخوږي راخپله کړي؛ پرته له شکه همدې روباټ ته به پناه ور وړي.

که همدا روباټ د انسانانو د غږ یا ټون تفیکیک کولی شي، په اسانه به د هغه انسانان له اوازه پوهېږي چې موډ یې څنګه دی؟ نن غمجن دی، خوشال دی، دلاسینې ته اړتیا لري، ستړی دی او که کوم بل څېز ته یې ضرورت دی؟

پرمختللي AI سیستمونه به د کمرې له لارې د انسان څېره تحلیلوي او د احساساتو مطابق غبرګون وښیي

شخصي اړیکې جوړول - که یو څوک هره ورځ د یو AI سره خبرې کوي، نو دا AI به د هغه عادتونه، خوښي او د خبرو سټایل زده کړي او داسې احساس ورکړي لکه یو واقعي ملګری.

که مصنوعي ځیرکتیا او یا هم همدا روباټان دومره هوښیار شي چې انسانان ورسره د خبرو پر مهال احساساتي تړاو پیدا کړي، نو پر بشري ژوند به لاندې اغېزې وښیندي.

بیا به روباټ نه یوازې له انسان سره لکه د چټ جي پي ټي او یا نورو بوټونو په څېر د یوه علمي ملګري په څېر چلند کوي، بیا به له دې وروسته همدا ملګری پر یو صمیمي ملګري هم واوړي.

خلک به دا د یوه هوښیار ملګري په څېر وګوري، چې نه ستړی کېږي، نه غوسه کېږي او تل د دوی پوښتنو ته ځواب ورکوي.

همدا روباټ به له هغو خلکو سره هم مرسته وکړي چې تل په تشویش کې وي، یوازېتوب یې ځوروي او په اصطلاح د زړه ملګری نه لري.

همدا روباټ به انسان ته د رواني مشاور په څېر مشورې ورکړي، چې دا به د خلکو پر ذهني روغتیا مثبت اثر وکړي.

د انساني ارتباطاتو بدیل به وګرځي. خو د همدې پرمختګ یو ستر تاوان به دا وي چې بیا به انسان له انسانه مخ اړوي او د واقعي انسان تشه به ورته یو روباټ ډکوي او د بشر اړیکې به متزلزلې کړي.

باید یادونه وکړو چې په نږدې راتلونکي کې به مصنوعي ځیرکتیا یوازې د انسان مالوماتي ملګری نه وي، بلکې ډیجیټلي او صمیمي ملګری به یې شي.

که څه هم دا به رښتینی انسان نه وي، خو احساساتي تعامل به یې دومره طبیعي وي چې خلک به فکر کوي دا هم یو ژوندی شخصیت لري.

همدا پوښتنه مې له چټ جي پي ټي روباټ څخه وکړه چې ایا په راتلونکي کې امکان لري چې انسانان او روباټان نږدې صمیمي دوستان شي او یا یو بل سره په غم و ښادۍ کې لاس ورکړي؟

آیا روباټان به په راتلونکي کې عاطفه او احساسات ولري، یوه پیچلې او ژوره موضوع ده چې په ټکنالوژۍ، فلسفه او روانشناسي پورې اړه لري. په اوسني وخت کې، روباټونه او مصنوعي هوښیاري (AI) یوازې د انسانانو لخوا ورکول شوي امرونه، معلومات او کاري پروسې پر اساس عمل کوي. دوی عاطفه یا احساسات نه لري، خو د راتلونکي ټکنالوژیکو پرمختګونو پر بنسټ، دا ممکنه ده چې داسې سیستمونه رامنځته شي چې د عاطفي حالتونو تقلید وکړي.

راځئ چې په دې اړه ځینې مهمې برخې وڅېړو:

ځینې روباټونه، لکه د دفتري مرستې روباټونه یا د ماشومانو لپاره د څارنې روباټونه، په عمومي توګه د احساساتو تقلید کوي ترڅو له انسانانو سره نرم او دوستانه تعامل وکړي.

دا روباټونه د انسانانو په احساساتو پوهېږي او ځینې ځوابونه ورکوي چې په انسانانو کې د مهربانۍ یا همدردۍ حس رامنځته کړي، خو دا یوازې د سیستم په کچو کې د پرمختللي پروګرامونو پر بنسټ ترسره کېدای شي.

خو دلته یوه بله معضله زېږېږي چې که روباټان عاطفي شي او شعور و عقل واخلي، نو بیا ګڼې فلسفي او حقوقي پوښتنې راپیداکولی شي. د بېلګې په توګه که روباټان عاطفه ولري، آیا هغوی باید د انسانانو په څېر حقونه ولري؟ که روباټان خوشحالي یا درد احساس کولی شي، آیا هغوی باید د هغوی د ژوند کیفیت ته پام وشي؟

که روباټان عاطفه وښیي، آیا دا به د انسانانو په ذهني او رواني حالاتو باندې اغېزه وکړي؟ ایا انسانان کولی شي له روباټانو سره داسې اړیکې رامنځته کړي چې د انساني اړیکو په څېر به اهمیت ولري او که نه؟ که مصنوعي ځیرکتیا د خلکو احساسات وپېژني او د هغوی سره د مشورې، زده‌کړې او ملاتړ لپاره وکارول شي، دا به یو لوی مثبت پرمختګ وي. خو که AI د انسانانو حقیقي ملګري ځای ونیسي، نو ښایي خلک له واقعي ټولنیز ژوند څخه لا زیات لرې شي. که مصنوعي ځیرکتیا دومره پرمختللې شي چې د انساني احساساتو تقلید وکړي، نو دا به د انسانانو په ذهن، احساساتو، او ټولنیزو اړیکو ژور اثر ولري. خلک به دا یوازې د معلوماتو وسیله نه، بلکې د یو احساساتي ملګري په توګه هم ومني، خو دا پرمختګ باید متوازن وي، ترڅو د انسانانو واقعي ټولنیز تعامل زیانمن نه شي.

# د اسلامي امارت عدالتي نظام - تاریخي تسلسل او معاصر تطبیق

محمد قاسم عزام

عدالت د هرې ټولنې د بقا اساسي ستن ده. هر هغه حکومت چې عدالت په کې حاکم، پیاوړی، با ثباته او د دوام وړ وي او هر هغه نظام چې عدالت په کې کمزوری شي، له زوال سره مخ کېږي.

د اسلامي امارت د عدالت نظام، که تاریخي مخینه یې وکتل شي او که د معاصرو نظامونو سره پرتله شي، د اسلامي او عدلي اصولو د عملي کېدو یوه بېلګه ده. دا نظام د نبي کریم «ص» د عدالتي تګلارې، د راشده خلافت د قضایي اصولو او د اسلامي فقهې د اصولو پر بنسټ ولاړ دی، خو په عین حال کې د معاصرې نړۍ له واقعیتونو سره هم تعامل کوي.



تاریخ شاهد دی چې اسلام له هماغه پیله د عدالت پر اصولو ټینګار کړی. رسول الله «ج» ، چې نه یوازې یو پیغمبر، بلکې یو عادل حاکم هم و، د عدل او انصاف داسې بېلګې یې وړاندې کړې چې تاریخ یې ساری نهویني. په مدینه کې د اسلامي دولت له تاسیس سره، نبي کریم «ص» یو داسې عدلي نظام رامنځته کړ چې د قبیلوي تعصباتو، اقتصادي امتیازاتو او ټولنیزو فشارونو څخه پاک و. یو ځل چې یوې قریشې ښځې فاطمه بنت اسود غلا وکړه، د هغې د شفاعت هڅه وشوه، خو نبي کریم «ص» وفرمایل: "که فاطمې د محمد لور هم دا کار کړی وای، یقیناً ما به یې لاس پرې کړی وای." دا د مطلق عدالت یو څرګند مثال و، چې په هغه کې هېڅ ډول شخصي، قومي یا اقتصادي مصلحتونه شامل نه وو.

وروسته، راشده خلافت هم د همدې عدالت لاره تعقیب کړه. حضرت عمر فاروق رضی الله عنه ته کله چې د مصر والي عمرو بن العاص د زوی شکایت راغی چې یو عام قبطي ته یې بې له حقه سزا ورکړې، نو حضرت عمر والي او د هغه زوی دواړه محکمې ته راوغوښتل. د عام قبطي سره یې عدل وکړ او حتی ورته یې د مصر والي ته د کورې وهلو اجازه ورکړه. دې عدالت نه یوازې داخلي ثبات رامنځته کاوه، بلکې اسلامي نظام یې د غیرمسلمو ترمنځ هم محبوب کړ.

نن اسلامي امارت د عدلي او قضائي نظام همداسې ځانګړتیاوې لري. د اسلامي امارت د عدلي سیستم په بنسټ کې د شریعت قوانینو ته ژمنتیا ده، خو په عین حال کې، د معاصرو اړتیاوو مطابق د قضایي، عدلي او حقوقي چارو تنظیم ته هم پاملرنه شوې. د امارت قاضیان د فقهي اصولو پر بنسټ فیصلې کوي، د خلکو ترمنځ د حقوقو د اعادې لپاره شرعي طریقې کاروي او هڅه کوي چې د اسلامي عدالت هغه روح عملي کړي چې اسلام یې غوښتنه کړې.

که په معاصره نړۍ کې د عدلي نظامونو مطالعه وکړو، نو ډېر توپیرونه تر سترګو کېږي. غربي په اصطلاح عدلي نظامونه، که څه هم د قانون حاکمیت ته ځان ژمن ښیي، خو عدل د دوی د سیاسي، اقتصادي او ټولنیزو فشارونو لاندې راځي. په ډېری مواردو کې، عدل یوازې د هغو خلکو لپاره موجود وي چې اقتصادي قدرت لري او د عدالت معیارونه له اقتصادي او سیاسي نفوذ سره تړلي وي. دا نظامونه که څه هم د بشري حقونو شعارونه ورکوي، خو عملي بڼه یې داسې ده چې د غربیانو لپاره یو معیار لري او د نورو ملتونو لپاره بل.

برعکس، د اسلامي امارت د عدلي سیستم ځانګړتیا دا ده چې عدالت د شریعت له اصولو سرچینه اخلي، چې په کې د شتمنو او بې‌وزلو، واکمنو او ولسي خلکو ترمنځ توپیر نه کېږي. که یو چارواکی تېروتنه وکړي، د محکمې لخوا ورڅخه پوښتنه کېږي. د امارت قضایي نظام د فساد ضد یو قوي میکانېزم لري، ځکه چې د قاضیانو ټاکنه د تقوا، علم او امانتدارۍ پر اساس کېږي، نه د سیاسي اړیکو یا اقتصادي قدرت له مخې.

د اسلامي امارت قضایي سیستم د بېلابېلو جرمونو لپاره د شرعي اصولو مطابق جزاګانې لري، چې د حدودو، قصاص او تعزیري سزاګانو ترمنځ توپیر کوي. غربي انتقادونه پر دې نقطه متمرکز دي چې اسلامي سزاوې سختې دي، خو که وکتل شي، نو د دې سزاګانو موخه یوازې انتقام نه، بلکې د ټولنې اصلاح ده. اسلام د جرم د مخنیوي لپاره یوازې سزا نه ټاکي، بلکې د جرم اقتصادي، اخلاقي او ټولنیزې ریښې هم له منځه وړي.

د اسلامي امارت د عدلي نظام ځانګړتیا دا هم ده چې د فیصلو پلي کېدل په کې ګړندي دي. د نورو قضایي نظامونو برعکس، چې پرېکړې په کې کلونه ځنډېږي، اسلامي امارت هڅه کوي چې د خلکو قضیې ژر تر ژره حل شي، ترڅو عدالت ونه ځنډېږي.

د فقهي اصولو له مخې، عدالت نه یوازې د حکومت، بلکې د ټولنې د هر فرد یو اخلاقي او دیني مسئولیت دی. "العدل أساس الملک" (عدالت د حاکمیت بنسټ دی)، دا قاعده د اسلامي امارت د قضا د اصولو اساس جوړوي. د امارت عدالت، د تاریخ له تجاربو او د معاصرې نړۍ له نیمګړتیاوو څخه زده کړه کړې او یو داسې نظام یې رامنځته کړی چې د اسلامي ارزښتونو، فقهي قواعدو او عملي تطبیق ترمنځ توازن لري.

که تاریخ ته وګورو، نو د هر قوي اسلامي نظام کامیابي د عدل پر بنسټ وه او هر اسلامي نظام چې کمزوری شوی، د عدل د ضعیف والي له امله و. د اسلامي امارت عدالتي نظام، که دوام پیدا کړي، د اسلامي تمدن د راتلونکي لپاره یو قوي بنسټ جوړولی شي، ځکه چې دا یوازې یو حکومتي میکانېزم نه دی، بلکې د اسلامي عقیدې، شریعت او ټولنیزو اصولو یو ترکیبي نظام دی چې د هر چا لپاره، پرته له امتیاز او استثنا، د عدالت تضمین ورکوي.

# د عقـــل ارزښـــت

مولوي نورالحق مظهري

عقل د انسان په وجود کې دومره ډېر ارزښت لري چې له لاندې احادیثو څخه ښکاري چې عقل د انسان په اصلاح کې ډېر رول لري او انسان هغه وخت تباه او بربادېږي چې عقل یې کم وي.

ژباړه: عمر بن خطاب رضي الله عنه د رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه روایت کوي چې هغه وفرمایل: انسان د عقل په څېر هېڅ نه دی موندلی چې خپل خاوند هدایت ته بیایي او یا یې د بدو کارونو څخه را ګرځوي.

یعنې تر عقل انسان ته هېڅ شی غوره نشته ځکه عقل انسان د هدایت لوري ته بیایي او د دې لپاره باعث جوړېږي چې انسان دې متقي جوړ شي، صبر دې وکړي، شکر دې آداء کړي، د الله تعالی د رحمت هیله ولري، د الله تعالی څخه و ویرېږي او د فتنو څخه د دنیا ځان لیرې کړي، همداسې عقل انسان د بدو کارونو څخه راګرځوي او د دې سبب جوړېږي چې انسان دې ځان د خیانت، کرکې، حسد، دوکه بازي، تکبر، اوږد امید او بخالت څخه وساتي.

نو که غواړئ د ژوند د حقیقي خوږو څخه خوند واخلئ او د نیکو اعمالو توفیق مو په برخه شي نو په ځان کې خپل عقل را ژوند کړئ، همداسې که غواړئ د ناوړه کارونو څخه وژغورل شي نو په هر کار کې د خپل عقل څخه ګټه پورته کړئ.

همداسې د رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه روایت دی چې: د هر شي لپاره چې سر ته رسول کېږي ستون وي او د مسلمان د اعمالو ستون عقل دی نو په اندازه د عقل د ده، الله تعالی لره د ده عبادت وي آیا تاسې د کفارو خبرې نه دي اورېدلي، چې د قیامت په ورځ وایي، ژباړه: که موږ اورېدل کولای یا مو درک/عقل درلودلای نو موږ به په خاوندانو کې د اور نه وای.[ادب الدنیا والدین ص ۳]

یعنې چې څومره د انسان عقل وي په هماغه اندازه یې عبادت وي؛ د کوم انسان عقل چې ډېر وي هغه به د الله تعالی عبادت هم ډېر کوي او د کوم انسان چې عقل کم وي نو هغه به د الله تعالی عبادت هم کم کوي، کفارو چې عقل نه درلودی ځکه یې نو په دنیا کې ایمان نه دی راوړی او د الله تعالی عبادت یې نه دی کړی ځکه نو په آخرت کې د پښېمانۍ اظهار کوي او وایي: که موږ په دنیا کې عقل درلودلای اوس به په اور کې نه سوځېدلای.

همداسې د عقل په ارزښت کې سعید بن جبیر رحمه الله فرمایي: ما تر عقل د انسان لپاره ښه کالي نه دي لیدلي؛ که انسان مات شي سموي یې، که ولوېږي پورته کوي یې، که خوار شي عزتمند کوي یې، که په متنې مځکې کې ولوېږي تر اوږې یې نیسي او د هغې څخه یې را باسي، که ناداره شي غني کوي یې او لومړی هغه شی چې ښه تبلیغ کوونکی انسان اړتیا ورته لري هغه علم دی چې د عقل سره ګډ وي.

یعني عقل د انسان لپاره لکه کالي ډېر ښه پټوونکی دی او په ډېرو نیمګړتیاوو کې یې مرسته کوي.

نو راځئ خپل غریزي عقل په ځان کې را ژوندی کړو او اکتسابي عقل د ځان لپاره حاصل کړو تر څو مو د ژوند په ټولو چارو کې هر ډول مرسته وکړي او د هر ډول انحراف او بد کار یو څخه مو وساتي.

# یونلیک_د اسلامي تمدن او تاریخ له یوه ستر ښاره!

**م حمادشیرزاد / درېیمه برخه**



د اشغالونو او یرغلونو له امله د اسلامي تمدن، فرهنګ او کلتور د ډېری ځایونو خوند او مزه نشته، اوس یواځې هلته سیر او تفریح کېږي، دا پورتنۍ یادې شوې مدرسې هغه وخت چې دلته روسي اشغال و، له یوې کنسرت/کَلب او لـه دې دوه نورو ځخه غوجل/ اصطبل او د آسونو د ساتلو کار اخیستل کیدلو، یو ځوک چې لـه خپل تېر تاریخ خبـر وي، نو پر دغه ځای د دربېدلو پر وخت بـه حتماً د خپل تېر برم پـر دغه حالت ژړا ورځي او افسوس به کوي.

د دغه مدرسو تاریخ او حالت له کتلو وروسته، چې هم مهاله نرۍ نـرۍ باران هم وربېدلو، د لس دقیقو پیاده مزل په ترسره کولو سره د ستر فاتح امیرتیمور لنګ د ښـځې «بي بي خانم» چې یوه ډېره مسلمانه او دیانتداره په تاریخ کې یاده شوې، د هغې له لوري د جوړ کړای شوي مسجد او مدرسې خواته لاړو، یاد مسجد نن سبا د ازبیکستان سمرقند ښار ریګستان بازار تر څنګ د بي بي خانم مسجد په نوم مشهور دی، چې نیږدې ۷۰۰ کاله پخوا آباد شـوی، یاد مسجد کې پر ګنبد او نورو دیوالونو باندې د قرآن عظیم الشـان بېلابېل سورتونه او آیتونه پر مرمر او نورو قیمتي کاڼو لیکل او نقاشـي شـوي، دا ځای چـې اوس د بي بـي خانم مسجد په نوم سـره شهرت لري پخوا په خپل وخت په کې یوه مدرسـه هم فعالـه وه، ډېر شمېر طالبانو په کې درس ویلو، د یاد مسجد په حویلۍ کې یـو پخوانی قرآن/ مصحف په شیشه کې بند پروت دی او دربوارو خواوو ته یې د الوغ بیګ او نورو مدرسـو په څېر آبادۍ شوي، خو اوس یواځې په کې د سیر او تفریح لپاره خلـک ګرځي او پخوانی برم او عزت په کې نشـته، حتی د غرمې لمونځ هلته راباندې راغلو، د لمانځـه لپاره مو دومره ځای هم ونه موندلو چې لمونځ پـه کې وکړو او اجازه هم نه وه.

د همـدې مسـجد مخامخ د بي بـي خانم مقبـره ده، کله چې بي بي خانم وفات شـوه نـو دې جومات ته مخامخ دفن کړای شـوه، چې وروسته ورسـره یو زوی او بل طرفته دوه خادمان هم ښخ شوي.

د دې بـي بي خانم د مسـجد تـر څنګ په زاړه شـکل سـره یو بازار و، چـې هلته د یاد هیـواد د کلتـور او فرهنګ پخوانـي آثار او په پخواني طرز جوړ شـوي لباسـونه او نور شـیان خرځېدل، د یاد هیواد خپلې میوې، د سمرقند مشـهور خوارې او نورې وچې میوې خرڅېدلې.

د غرمـې مهـال و، همالته د سـمرقند د زاړه بازار په یو طـرف کې مو د سـمرقند له ټولو مشـهور پلو وخوړ، چې دوی ورته «آش پلو» نوم کارولـو او دغلته یاد دوکان له ۱۵۰ کلونو زیات وخت شوی و چې د دغه اوسني مالک د نیکونو لـه لوري جوړ او همـدا پلو په کې خرڅېدلو.

مخامـخ د یو څـو دقیقو په مزل سـره د یوه لویه هدیره وه، د همـدې هدیرې تر څنګ د ازبیکسـتان هیواد پخواني ولسمشـر اسلام کریموف مقبره وه، هلته د نقشبندي سلسلې د یو مشهور عالم خواجه عبدالله نقشبندي چې نیږدې ۷۰۰ کاله پخوا تېر شـوی هم دفن و، همالته تر څنګ یې یو پخوانی مسـجد چې نیـږدې ۳۰۰ کاله وړاندې جوړ شـوی و، د غرمې لمونځ وکړ، یاد مسـجد هم په هماغه پخواني شـکل سـره پاتـې او یواځې رنګ شـوی دی. **نور بیا...**

## ګاونډیو هېوادونو کې افغان چورلکې...

د ملي دفـاع وزارت له ګاونډیـو هېوادونو غوښـتي چې د افغانانو حق ته دې درناوی ولري او امریکا دې بیرته افغانستان ته د یادو ټولو الوتکو د را انتقالېدو په لاره کې خنډونه نه جوړوي. د یادونې ده، چې د افغانسـتان ګڼې چورلکـې د کابل د فتحـې پر مهال د تېـرې اداري د چاراوکو له لوري د تېښـتې پرمهال ګاونډیو هېوادونو ته انتقال شـوې، چـې اوس یې ۷ هلیکوپټرې له ازبکسـتان څخه امریکا ته انتقال شوې دي.

## شاوخوا ۲۵۰۰ چرګان بېرته پاکستان...

وزارت د کرنـلارې مطابـق او ننګرهـار کې د چرګانو د سـکتور د پیاوړتیـا لپاره یې د نـورو هېوادونـو څخـه د چرګانـو انتقال بنـد کـړی او همدارنګـه دا چـرګان چې عمرونـه یـې ډېر دي، انسـانانو تـه ترې د مختلفـو ناروغیـو د انتقال سـبب ګرځي. تر دې وړاندې هم د ننګرهار کرنې ریاسـت د تورخم قرنطیـن کارکوونکو په ټنونو خراب ممپلي، جوار او سـویابین بېرته پاکسـتان ته مسترد کړي دي.

# افغان اعلانات

### اطلاعیه تصمیم اعطای قرارداد

موضـوع: ترمیمات قسمت هـای باقی مانـده تعمیرمدیریت عمومی ملبوسـات نظامی.

بدین وسـیله به تاسی ازفقره)۲(ماده چهل سوم قانون تدارکات و امریه نمبر(۷۵۹۶) مورخ ۱۴۴۶/۰۷/۲۶ مقـام وزارت دفاع ملی به اطلاع عموم رسـانیده میشود اینکه ریاسـت تدارکات وزارت دفـاع ملی در نظر دارد قـرارداد پروژه تهیه مواد واجرای احجام پروسـه کاری امورات (ساختمانی ،شـبکه برق وآبرسانی )قسمت باقی مانده تعمیرمدیریـت عمومی ملبوسـات نظامی از بابـت سـال مالـی ۱۴۰۳دارای نمبر تشـخیصیه وزارت دفـاع ملـی-۱۴۰۳-امـور سـاختمانی-۰۱۱۸-۲۵۱۰۵)را با شـرکت سـاختمانی صفـت دارای جواز نمبـر(D-۲۴۹۰) بـه قیمـت مجموعی مبلغ(۳۳،۸۸۰،۶۱۵) سی وسـه میلیون و هشتصدو هشـتاد هزارو ششصدو پانزده افغانی اعطاء نماید.

اشـخاص حقیقـی وحکمی کـه هرگونه اعتراض درزمینه داشـته باشـند میتوانند اعتراض خویش را از تاریخ نشر این اعلان الـی هفـت(۷) روز تقویمـی طورکتبی تـوام با دلایـل آن به مدیریـت تدارکات امورسـاختمانی ریاسـت تدارکات واقع خواجه بغراء مقیم گارد سـابقه بلاک (۵) منزل (۲) اتاق نمبـر(۲۱۳) ناحیه پانزده شـهرکابل وفق احکام مـاده پنجاه {۵۰} قانون تدارکات ارائه نمائید.

ایـن اطلاعیه به معنی عقـد قرارداد نبوده و الـی تکمیـل میعـاد فـوق الذکر وطی مراحـل قانونـی بعـدی، قـرارداد منعقد نخواهد شد.

***

### اطلاعیه داوطلبی

موضوع: نشـر اعـلان داوطلبـی تدارک کرایه گیـری موتر برای انتقال شـاگردان انسـتیتوت مسلکی ناشـنوایان کابل برای سال مالی ۱٤۰٤.

شماره داوطلبی:

TVET-A/NCB/NCS-02/ 1404

ادارهٔ تعلیمـات تخنیکـی و مسـلکی از تمـام داوطلبان واجد شـرایط دعوت می نمایـد تـا در پروسـه داوطلبـی تدارک کرایه گیری موتر برای انتقال شـاگردان انسـتیتوت مسلکی ناشـنوایان کابل برای سـال مالی ۱٤۰٤. اشـتراک نموده و نقل مهر شـده شـرطنامه مربوط را در حافظه یـا فلش دسـک بدسـت آورده، آفرهای خویش را مطابق شـرایط مندرج شرطنامه و طبق قانـون و طرزالعمل تدارکات طور سربسته از تاریخ نشـر اعلان الی ساعت ۱۰:۰۰ قبل از ظهر، روز پنج شـنبه مورخ ۱٤۰۳/۱۲/۱٦ به بلاک سـوم، منزل اول ، آمریت تدارکات واقـع کارته چهار، جوار وزارت تحصبـلات عالـی ارایـه نمایند. آفرهـای ناوقـت رسـیده و انترنیتی قابل پذیرش نمی باشد.

تضمیـن آفر بصورت بانـک گرنتی، به مبلـغ ( ۹٦،۰۰۰) نـود و شش هـزار افغانی بوده، جلسـه آفرگشـایی سـاعت ۱۰:۰۰ قبل از ظهر، روز پنج شنبه مورخ ۱٤۰۳/۱۲/۱٦، منزل اول ، تالار جلسات معاونیت امور مالـی و اداری تدویر می گردد.

***

د مزارشـریف په ښـار کې چیني فروشۍ مارکېـټ بانـدې د پانګونۍ پـه موخه د داوطلبۍ خبرتیا!

د مالیـې وزارت د دولتـي املاکـو لوی ریاسـت غواړي چې په بلـخ ولایت مزار شریف ښـار کې د یو باب امارتي جایداد د پانګونـې لپاره داوطلبۍ ته وسـپاري، د بلخ ولایت مزار شـریف ښـار په لومړۍ ناحیـه کې د روضې مبارکـې ختیځ لوري ته د چیني فروشـي مارکېټ چې مساحت ئـې (۱۱۵۳،۸) متـر مربـع دی، یـاد مارکېټ اوسـمهال درې (۳) پوړیزه سابقه دوکانونـه او اطاقونه لري، ددې سـاحې د جي، پـي، ایس کوردینات شـمېرې په اعتبار د (طـول البلد ـ۶۷،۱۱۳۶۱۳ ) او ( عرض البلد ـ۳۶،۷۰۸۹۳۶ ) دي، چې حد اکثر د یوې تهکوای سـره په (۵) پوړه کي جوړېږي.

تـول هغه حقیقـي او حکمي اشـخاص چـي غـواړي پـر یـاد امارتـي جایداد پانګونـه وکړي، کولاۍ سـي چـي خپل غوښـتنلیکونه د ۱۴۰۳/۱۲/۲۰ نېټـې څخه د ۱۴۰۳/۱۲/۲۰ مـي نېټې پوري د (۳۰) ورځو په مـوده کي د مالیې وزارت د دولتـي املاکو لوي ریاسـت یـا د بلخ ولایت محترم مسـوتوفیت ته وسـپاري او شـرطپانه د (۵۰۰۰) پنځه زره افغانیو په بدل کي تر لاسه کړي.

د اړیـکي شـمېره: +۹۳۷۹۶۷۵۷۴۸۶

د واټـس ایـپ شـمېره: +۹۳۷۹۶۷۵۷۴۸۶

د آفر ګشـایي ناسته: د ۱۴۰۳/۱۲/۲۱ نېټه تر سره کیږي.

پـتـه: د دولـتـي املاکـولـوی ریاسـت سینما پامیـر(۱۴) پوړیزه ودانۍ څلـورم پوړ د پلان او پانګوني آمریت او د بلـخ ولایت محـترم مسـتوفیت.

***

### اطلاعیه کندز

مارکیت میوه ملکیت ریاسـت شـاروالی کنـدز واقع ناحیه سـوم شـهر کندز برای مدت یک سـال بـه اجاره داده میشـود. اشخاص و افراد واجد شرایط که خواهش اشـتراک در مجلس داوطلبی آن را داشته باشـند با درخواست های شـان اعتبار از تاریخ نشر اعلان الی مدت ۲۱ روز کاری به ریاست شـاروالی کندز مراجعه نمایند. شـرطنامه را ملاحظه نمـوده تامینات نقداً اخذ میگردد. ۸۸۶

***

اطـلاعیه کندز

اسـتیدیو ورزشی مکلیت شـاروالی کندز و اقع ناحیه اول شـهر کنـدز برای مدت یک سـال به اجاره داده میشود. اشخاص و افراد واجد شـرایط که خواهش اشتراک در مجلس دوطلبی آن را داشـته باشـند با درخواست های شان اعتبار از تاریخ نشر اعلان الی مدت ۲۱ روز کاری به ریاست شـاروالی کندز مراجعه نمایند. شـرطنامه را ملاحظه نمـوده تامینات نقدا اخذ میگردد. ۸۸۷

***

### اطلاعیه مفقودی

یـک قطعـه جـواز ، یـک قطعـه کارت هویـت و یـک طغـرا مهر وکالـت دفاع شـماره ۴۹۱۴ مـورخ ۱۳۹۹/۱۱/۲۰ مربـوط محتـرم احمـدزی علیـم فرزند عبدالمجیـد که شـماره متذکـره نیز درج آن میباشـد مفقود گردیده از اعتبار ساقط میباشند. ۹۱۷۵

***

### اطلاعیه داوطلبی

موضوع:تـدارک کرایـه گیـری موتر برای انتقال شـاگردان و اسـتادان انسـتیتوت مسلکی روشـندلان کابل برای سال مالی ۱٤۰٤.

شماره داوطلبی:

TVET-A/NCB/NCS-01/ 1404

ادارهٔ تعلیمات تخنیکی و مسـلکی از تمام داوطلبان واجد شـرایط دعوت می نماید تا در پروسـه داوطلبی تدارک کرایه گیری موتر بـرای انتقال شـاگردان و اسـتادان انستیتوت مسـلکی روشندلان کابل برای سـال مالی ۱٤۰٤.اشـتراک نموده و نقل مهر شـده شـرطنامه مربوط را در حافظه یـا فلش دسـک بدسـت آورده، آفرهای خویش را مطابق شـرایط مندرج شرطنامه و طبق قانـون و طرزالعمل تدارکات طور سربسته از تاریخ نشـر اعلان الی ساعت ۱۰:۰۰ قبـل از ظهـر، روز چهار شـنبه مورخ ۱٤۰۳/۱۲/۱۵ به بلاک سوم، منزل اول ، آمریت تـدارکات واقع کارته چهار، جـوار وزارت تحصبـلات عالـی ارایـه نماینـد. آفرهای ناوقت رسـیده و انترنیتی قابل پذیرش نمی باشد.

تضمیـن آفر بصورت بانک گرنتی، به مبلغ ( ۱۱۲،۰۰۰) یـک صـد و دوازده هزار افغانی بوده، جلسـه آفرگشـایی سـاعت ۱۰:۰۰ قبل از ظهر، روز چهار شنبه مورخ ۱٤۰۳/۱۲/۱۵، منزل اول ، تالار جلسات معاونیـت امـور مالی و اداری تدویـر می گردد.

## د افغاني کلتور نوي کول...

د وخت سـره سـم د کلتـور نوي کـول نه یـوازې اړتیـا ده، بلکې د هرې ټولنـې د پرمختګ او بقا لپاره یوه اساسـي وسـیله ده، خو دا کار باید په داسـې ډول ترسره شي چې زموږ دیني او ملي ارزښـتونه په کې خوندي پاتې شي او په همدې توګه یـو متـوازن او پرمختللـی افغاني کلتور رامنځته شي.

نومورې زیاتوي چـې ځوانانو ته د کلتور د عامه پوهـاوي او جذابولو لپـاره یـې لـه، تعلیمـي نصاب، لیکچرونـو، ورکشـاپونو، رسـنیو، کورنیو رول، مشـاعرو او ځینو نورو اغېزناکـو لارو ګټه اخیسـتې او په وینا یـې دغه لارې بانـدې لا کار کوي.

کلتـور د هـرې ټولنـې د هویت، دودونـو، عقایـدو او ارزښـتونو یو ترکیـب دی، چـې د خلکو ورځنی ژوند، ټولنیـزې اړیکې او پرمختګ ټاکي. د وخـت په تېرېـدو، ټولنې د بېلابېلـو عواملـو له املـه بدلون مومي، چـې ځینـې یـې طبیعي، ځینـې یې اجبـاري، او ځینې یې د نړیوالو اغېـزو پایلـه وي. د کلتور بدلـون نه یوازې د ژونـد بڼه رنګینه کوي، بلکې د پرمختګ او نوښـت دروازې هم پرانیزي.

## د نفتـو بیې د پـام وړ ټـیټې...

کیلـو اوبلـن ګازو بیـه لـه ۵۸ څخـه ۵۰ افغانیو ته را ټیټه شـوې ده.

د کابل اوسـېدونکي پـه بازارونو کې د بیـو له را ټیټېـدو خوښ دي او لـه حکومـت څخـه غـواړي چـې د خوراکـي توکـو د بیـو کنټـرول تـه دې لا زیاتـه پاملرنه وشي.

نرخونو کې دغه کمښـت وروسـته له هغـې راغلی چـې پنځه ورځې وړانـدې د کابـل ښـاروالۍ لـه احتـکار څخـه د مخنیـوي او د لومړنیـو توکو د نرخونـو د کنټرول کمېسـیون نوې نرخ نامې ترتیب او له ټولو پلورنځیو یې وغوښـتل چې د هغې په اجرا کې دې له حکومت سره مرسته وکړي.

## نورستان کې د یوه روغتیایي مرکز...

نوکریوالـۍ خونـه، پخلنځـی، احاطـوي دېـوال او نـورې اړینې برخې ولري.

باید وویل شـي، یاد روغتیایي مرکز به د کامدېش ولسـوالۍ اوسېدونکو او امنیتـي ځواکونو تـه د روغتیایي خدمتونو پـه برخه کې اسـانتیاوې برابرې کړي

## کندز کې ۳۰ ټنه زاړه درمل او ...

بېلابېلو درملتونونو او سـوداګریزو مارکیټونـو څخـه دا توکي راټول او سوځول شوي دي.

پـه ورتـه وخـت کـې د کنـدز اوسـېدونکو د دې اقـدام سـتاینه وکړه او د تاریـخ تېرو درملو او بې کیفیتـه خوراکي توکـو د دوامداره مخنیوي غوښتنه یې وکړه.

## د کابل-بیجینګ پر سوداګریزو او اقتصادي...

یاده دې شـي، چې په ترسره شوې ناسـته کې دواړو لوریو د افغانستان او چین ترمنځ د دوامداره اقتصادي اړیکو، سـوداګریزې راکړې ورکړې او د زېربنایـي پروژو په برخه کې پر همکارۍ ټینګار وکړ.

## ۲۱۳جوان در کندز از بخش‌های...

آموزش فن و حرفه که از سوی بنیاد آقاخان راه‌اندازی شـده بـود، فارغ شده‌اند.

ایـن در حالی اسـت کـه تلاش‌ها جهـت فراهم‌سـازی فرصت‌هـای کاری بـرای شـهروندان کشـور از سـوی نهادهای امارتی و غیر امارتی ادامه دارد.

## آزادی ۴۲ شهروند افغان...

این شهروندان کشـور بدلیل نداشتن اسـناد قانونی اقامت توسـط پولیس پاکسـتان بازداشـت و زندانی شـده بودند.

در خبرنامه آمده که هریک از زندانیان آزادشده ۲ تا ۵ روز را در حاجی‌کمپ پاکستان سپری کرده‌اند.

وزارت امـور مهاجریـن افـزوده که زندانیـان آزادشـده پـس از دریافت کمک‌های بشردوسـتانه به سـاحات اصلی‌شان فرستاده شده‌اند.

هفته گذشته نیز ده‌ها تن از شهروندان افغان از زندان‌های پاکسـتان آزاد و به کشور برگشتند.

## ساختمان شفاخانه ۱۰۰ بستر ولایتی نیمروز...

در هر ولسـوالی این ولایت، آغاز خواهد شد.

او ارایه خدمـات صحی معیاری و با کیفیت برای شـهروندان کشـور را یکـی از اولویت‌هـای امـارت اسلامی بیان کرده است.

وزارت صحـت عامـه در مـورد بخش‌های فعال شـده در ساختمان جدیـد شـفاخانه ولایتـی نیمروز معلومات نداده است.

این سـومین سـاختمان شـفاخانه و مرکـز صحی جامع اسـت که در کمتر از یک هفته گذشـته در سـه ولایت افتتاح می‌شود.

پیـش از ایـن سرپرسـت وزارت صحت عامه در سفر به ولایت‌های لغمـان و هلمند نیز سـاختمان دو مرکز صحـی جامع را به هزینه‌های ۱۷ و ۲۶ میلیـون افغانـی افتتاح و به بهره‌برداری سپرد.

## د میدان وردګو له ښوونځیو سره...

د ۳ سـوه ۵ زره او ۷۶۰ امریکایي ډالرو په ارزښـت د درسي او اداري توکو مرسته شوې ده.

دغـه راز په دې مرسـتو کې، ۲ زره ۵۲۸ کېټه د لیک لوسـت اړین توکي او ۳۹۵ کېټه اداري توکي شامل دي، چې په یو کېټ کې د ۲۰ زده‌کوونکو په پاره ۱۰ قلمه بېلابېل درسـي توکي برابر شوي دي.

د ویلـو ده، چې د پوهنـې په برخه کې همکارو بنسـټونو تر دې وړاندې د میدان وردګو ولایت سـربېره د ګڼو ولایتونو له پوهنې ریاسـتونو سره په درسي برخو کې مرستې شوې دي.

Shariat
Daily

Shariat
Published by
Islamic Emirate of Afghanistan
Eng, Uzair Baryaly ، Director of Gov.dailies
0202526340
Chief Editor : Farooq Ghaljai/ 0778635852
Email: info@shariatdaily.com
ویب سایت: WWW.shariatdaily.com

شریعت
د دولتي ورځپاڼو رئیس:
انجنیر عُزیر بریالی / ۰۲۰۲۵۲۶۳۴۰
مسئول مدیر: فاروق غلجی/ ۰۷۷۸۶۳۵۸۵۲
مسئول سکرتر: خالد افغان/ ۰۷۷۳۰۶۲۸۳۲
د شریعت برېښنا لیک: info@shariatdaily.com
پته: اتمه ناحیه، د المپیک څلور لارې، د حضوري چمن ختیځ، کابل ـ افغانستان
شماره توزیع و شکایات: ۰۲۰۲۳۱۲۵۰۹ / ۰۷۶۶۰۴۴۹۶۶/ ۰۷۳۱۶۰۶۰۷۳

Sunday 09 February 2025 / Established: 1995 / 2nd Season / Vol: 678


# د نوي کابل ښار د لومړي فاز پراختیایي پلان جوړ شو




د کور او ښار جوړولو وزارت سرپرست شیخ حمدالله نعماني د نوي کابل ښار د لومړي فاز الف پارسل پراختیایي پلان ویزه کړ.
د یاد وزارت د خبرپاڼې له مخې، د دغه پلان له ویزه کېدو وروسته به په نږدې راتلونکي کې د دې ښار د لومړي فاز الف پارسل چارې لا پراخه او ګړندۍ شي.

د کور او ښار جوړولو وزارت په دې خبرپاڼه کې داډ څرګند کړی، چې په اوسني کابل ښار کې د اسانتیاوو په رامنځته کولو او هېوادوالو ته د معیاري ښاري خدمتونو د وړاندې کولو په موخه د نوي کابل ښار چارې چټکې کړې.

د معلوماتو له مخې، نوی کابل ښار چې د اوسني کابل ښار بدیل او په شاوخوا ۳ سوه او ۷۰ زره جریبه ځمکه جوړېږي، چارې به یې ورځ تر بلې د پرمختګ په حال کې دي.

## نړۍ ځار



### ایران کې سړه هوا؛ ښوونیز مرکزونه او دولتي ادارې تړل کېږي



د ایران په ۲۰ ولایتونو کې به د سړې هوا له امله دولتي ادارې او تعلیمي مرکزونه سره له نن ورځې وتړل شي.
د ایرنا خبري اژانس د راپور له مخې، ایراني چارواکو دغه پرېکړه وروسته له هغې کړې، چې د دې هېواد د هوا پېژندنې ادارې په راتلونکو ورځو کې د سختې هوا سرېدو خبر وکړی دی.
یاد خبري اژانس د ایران د هوا پېژندنې ملي ادراې له قوله ویلي، چې په شمال لویدیځ اردبیل کې به د تودوخې درجه تر منفي ۱۸ سانتي ګرادو پورې ټیټه شي.

### ۳ اسیر اسرائیلی در بدل ۱۸۳ فلسطینی تبادله می‌شوند

اوهاد بن عامی، الی شرابی و اور لوی، سه اسیری هستند که به تاریخ ۷ اکتوبر ۲۰۲۳ به اسارت گرفته شده بودند و در این دوب تبادله می‌شوند.
این پنجمین دور تبادله زندانیان میان رژیم صهیونیستی اسراییل و جنبش حماس از آغاز آتش‌بس میان دو طرف است که انجام می‌شود.
در میان ۱۸۳ زندانی که از زندان‌های رژیم صهیونیستی اسراییل آزاد می‌شود زندانیان دارای حبس ابد، بلند مدت و بیش از یک صد تن از کسانی هستند که در جریان ۱۵ ماه جنگ غزه بازداشت شده‌اند.

### خامنه يي: له واشنګټن سره خبرې بې ګټې دي

د ایران مذهبي مشر ایت‌الله علي خامنه يي د خپل هېواد د اټومي پروګرام په تړاو د ټرمپ وروستیو څرګندونو ته غبرګون ښودلی دی.
خامنه يي د ایران د هوايي ځواک افسرانو ته په وینا کې ویلي، چې له امریکا سره خبرې زموږ د ستونزو د حل لپاره اغېزمنې نه دي.
نوموړې دا څرګندونې وروسته له هغې کړې، چې ګواکې ایراني چارواکي په وروستیو څو میاشتو کې د ولسمشر ډونالډ ټرمپ له ادارې سره خبرې وکړي.
دا په داسې حال کې ده، چې د امریکا ولسمشر له دې وړاندې له ایران سره د نوي اټومي تړون غوښتنه هم کړې.



### پنجاب کې د تحریک انصاف ګوند غړي نیول شوي

د پاکستان پولیسو په پنجاب او کمشیر کې د تحریک انصاف ګوند هغه مشران او غړي نیولي چې پرون یې لاریون کې برخه اخیستې وه.
دغه ګوند دې ورځې ته، چې د تېر کال د ټاکنوله ورځې سره برابره ده، توره ورځ نومولې او بېلابېلو ښارونو کې یې لاریونونه کړي دي.
بلخوا حکومت په دغه هېواد په تېره پنجاب کې پر لاریونونو بندیز لګولی دی.
پولیسو په پنجاب او کمشیر کې د لاریونونو نه کولو له امر د سرغړونې په جرم د دغه ګوند یو شمېر پلویان نیولي دي.

## نورستان کې د یوه روغتیایي مرکز چارې پیل شوې




د نورستان ولایت په کامدېش ولسوالۍ کې د ۱۰ میلیونه افغانیو په لګښت یوه روغتیایي مرکز ته د ودانۍ جوړولو چارې پیل شوې دي.
د کامدېش ولسوالۍ امنیه قوماندان مل پاسوال محمد یوسف جمالزي وویل دغه مرکز به د لابراتوار خونه، ... ۳مخ

## کندز کې ۳۰ ټنه زاړه درمل او خوراکي توکي سوځول شوي



د کندز ولایت د عامې روغتیا ریاست مسئولینو په دغه ولایت کې د ۳۰ ټنه تاریخ تېرو درملو او بې کیفیته خوراکي توکو د راټولولو او سوځولو خبر ورکړی دی.
د یاد ریاست رییس وویل، چې په تېرو څلورو میاشتو کې د دوی د څارنې ټیم له... ۳مخ

## د عمري بند پر خوندیتوب او څار ټینګار وشو

د اوبو او انرژۍ وزارت سرپرست ملا عبداللطیف منصور او د زابل ولایت د اوبو او انرژۍ رئیس ملا عبدالکریم ذوالفقار، په دغه ولایت کې له عمري بند څخه لیدنه کړې ده.
د اوبو او انرژۍ وزارت سرپرست له عمري بند څخه د لیدنې پرمهال؛ د دغه بند د ساتنې او پاملرنې په اړه اړوندو مسئولینو ته اړینې سپارښتنې کړې دي.
د عمري بند پروژه د زابل د مرکز قلات ښار په څلور کیلومترۍ کې موقعیت لري چې د څه باندې ۱۲۷ میلیونه افغانیو په ارزښت د موسمي سېلابونو د کنټرول، د کرنیزو ځمکو د خړوبولو او تر ځمکې لاندې اوبو سرچینو د تقویې لپاره پلې شوې ده.
یاد بند د ۲۳ مترو په لوړوالي سره د ۲.۹ میلیونه متره مکعب اوبو د ذخیره کولو، د ۶۱ کیلوواټه برښنا د تولید او د شاوخوا ۵۶۰ هکتاره کرنیزو ځمکو د خړوبولو وړتیا لري.

## شاوخوا ۲۵۰۰ چرګان بېرته پاکستان ته ورو‌ګرځول شول

د ننګرهار کرنې، اوبو لګولو او مالدارۍ ریاست وایي، چې د تورخم قرنطین وترنر ډاکترانو له لوري پاکستان څخه ۲۵۰۰ زیات عمر لرونکي چرګان د کرنې ریاست مامورینو له لوري تر نیول کېدو وروسته بېرته پاکستان ته مسترد شول.
د ننګرهار کرنې، اوبو لګولو او مالدارۍ رییس ویلي، تر ارزونې وروسته په تورخم کې د دوی کارکوونکو له لورې ترنیول کېدو وروسته د زیات عمرلرونکو چرګانو دا غوښه بېرته پاکستان ته مسترد شوه.
د محسن په وینا د کرنې... ۳مخ



## د افغاني کلتور نوي کول او اړتیا یې

تاج محمد بهار



کلتور د هرې ټولنې هویت، دودونه، ارزښتونه او باورونه منعکسوي. دا د نسلونو ترمنځ د فکري، عقیدوي او عملي اړیکو یوه مجموعه ده، چې د خلکو د ژوند د بڼې، اقتصاد، سیاست او ټولنیزو اړیکو پر پراخېدو او بدلونونو اغېز لري.
د تاریخ په اوږدو کې ټولنې د مختلفو عواملو له امله د کلتوري بدلونونو شاهدې پاتې شوې دي، چې پکې تعلیم، ټکنالوجي، نړیوالې اړیکې، او ټولنیز تحرک شامل دي.
د کلتور بدلول په یوه ټولنه کې طبیعي ده، خو هغه ټولنې چې دغه بدلون منفي یا ورو کوي، له هغو وروسته پاتې کېږي، چې زر او مثبت بدلون کوي. عصري ټکنالوجۍ نړۍ په یوه کلي بدله کړې ده، خو بیا هم دغه کلي کې ټول یو شان مخته نه دي روان، ځیني چټک دي، ځیني په دغه چټکو پسې دي او د چټکتیا لاملونه یې خپلوي.
افغاني ټولنې هم د وخت په اوږدو کې د کلتور ځیني برخې نوې کړې دي او ځینې لا هماغه شان پر ځای پاتې دي، چې د مسوولینو په وینا نوي کولو ته اړتیا لري. د اطلاعات او کلتور وزارت هم له وخت سره تغییر یو اصل ګڼي او وایي چې دغه بدلون باید په احتیاط سره وشي، چې خپل اصل افغاني او اسلامي کلتور له لاسه ورنکړو.
د یاد وزارت ویاند حبیب غفران امارتي ورځپاڼو ته په لېږلي پیغام کې ویلي: ۳مخ